پښتو ټولنه

پرله پسې لمبر

(۱۷۶)

# د پښتو مصدرونو لاربود

لیکونکی

پوهاند صدیق الله «رښتین»

۱۳۴۴ش

# مننه

هسې خو په هر زړه کښې، دیو ښه کار د کولو هیله پرته وي، خو دعمل جامه هلته اغوندي چه یو څوک یې د خوځوي او د هله پاڅیږه! عزم ورته وکړي.

له پښتو ژب دو ورسره زه ډیره زړه او پخوانۍ ملګرتیا لرم او خدای شته چه ډیر وخت مې په دغه کار کښې تیر شوی دی، خو سره ددې هم چه یوه په زړه پورې یادګیرنه نه وی نو زه هم په نورو چارو وختل ادم.

د پوهنې د پیاوړي وزیر: «ډاکټر محمد انس» پوره مننه کوم چه ماته یې څو ځله د پښتو ژبې د زده کوونکو د پاره د افغانو دیو نوي لاربنود د لیکلو وینا وکړه. هغه چه د غې یادونې زما په اراده کښې قوت پیدا کړ او په یوه هفته کښې د دغه لاربنود په لیکلو بریالی شوم. نو خدای دې وکړي چه په رښتیا سره د لاربنود وظیفه پرځای کړی شي.

«رښتین»

# د پښتو مصدرونو لارښود

د پښتو مصدرونه د جوړښت له مخه پر پنځه ډوله دي .

۱- لام والا : چه په آخر کښې یې د « ل » نښه وي لکه : ساتل - وتل - لرل .

۲- ول والا : چه په آخر کښې یې د « ول » نښه وي لکه : گرزول - پوهول .

۳- یدل والا : چه په آخر کښې یې د « یدل » نښه وي لکه : گرزېدل - پوهېدل .

۴- کول والا : چه په آخر کښې یې « کول » راغلي وي لکه : پخلاکول - رڼاکول .

۵- کېدل والا : چه په آخر کښې یې « کېدل » راغلي وي لکه : پخلاکېدل - رڼاکېدل .



د پښتو مصدرونه د معنی له مخې پر دري ډوله دي :

۱- لازمي مصدرونه ، چه مفهوم یې یوازې په فاعل تمامیږي او مفعول نه غواړي لکه : وتل - تلل او نور .

۲- متعدي مصدرونه ، چه مفهوم یې یوازې په فاعل نه تمامیږي او مفعول هم غواړي او په معلوم او مجهول باندې ویشل کیږي . معلوم - لکه : ساتل ،

او مجهول لکه: وهل کېدل .

۳- حکمي متعدي مصدرونه: چه په معنی کښې لازمي وي او په حکم کښې متعدي وي یعنی د (ما - تا) له ضمیرو سره استعمالیږي لکه: خندل - ژړل .

## د پښتو مصدرونه د اشتقاق له مخه پر درې ډوله دي :

۱- تغیرنه منونکي مصدرونه: چه په حالیه فعلونو کښې یې په فعلي ماده کښې کوم اساسي بدلون نه راځي لکه: ساتل چه د حال فعل یې (ساتم) دی .

۲- قانوني تغیرمنونکي مصدرونه: چه په حالیه فعلونو کښې یې یو قانوني بدلون راځي لکه: وتل چه د حال فعل یې (وځم) دی .

۳- بې قانونه تغیرمنونکي مصدرونه: چه په حالیه فعلونو کښې یې بې قانونه تغیر راځي لکه: کتل چه د حال فعل یې (ګورم) دی .

داهم باید ووایو چه د پښتو ټول مصدرونه د ماضیه افعالو دراویستون له مخه قانوني منظم مصدرونه دي ، یوازې د حالیه فعلونو د جوړښت له مخه د غه درې ډولونه لري . او س غواړو چه د پښتو مصدرونو له بېلو ، بېلو قسمونو څخه د فعلونو د جوړښت شکلونه وښیو او د پښتو زده کوونکو ته یو نوی لارښود جوړه کړو .

# لاموالا مصدرونه

لام والا مصدرونه په دوو لويو څانګو وېشل کېږي : ۱ـ تغير نه منونکي مصدرونه

مثال:- منل

| | استمراري حال | مطلق حال | امکاني حال | مستقبل | استمراري امر | مطلق امر | استمراري ماضي | مطلقه ماضي | قريبه ماضي | بعيده ماضي | استمراري امکاني ماضي | کتنه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مفرد متکلم | منم | ومنم | منلای شم | وبه منم | . | . | منلم | ومنلم | منلی يم | منلی وم | منلای شوم | |
| جمع متکلم | منو | ومنو | منلای شو | وبه منو | . | . | منلو | ومنلو | منلی يو | منلی وو | منلای شو و | |
| مفرد مخاطب | منې | ومنې | منلای شې | وبه منې | منه | ومنه | منلې | ومنلې | منلی يې | منلی وې | منلای شوې | |
| جمع مخاطب | منئ | ومنئ | منلای شئ | وبه منئ | منئ | ومنئ | منلئ | ومنلئ | منلی ياست ئ | منلی وئ | منلای شوئ | |
| مفرد مذکر غايب | مني | ومني | منلای شي | وبه مني | مني دي | ودې مني | مانه | ومانه | منلی دی | منلی ؤ | منلای شو | |
| جمع مذکر غايب | ″ | ″ | ″ | ″ | ″ | ″ | منل | ومنل | منلی دي | منلی وو | منلای شول | |
| مفرد مؤنث غايب | ″ | ″ | ″ | ″ | ″ | ″ | منله | ومنله | منلې ده | منلې وه | منلای شوه | |
| جمع مؤنث غايب | ″ | ″ | ″ | ″ | ″ | ″ | منلې | ومنلې | منلې دي | منلې وې | منلای شوې | |

ياددونه : ۱ـ نور لام والا تغير نه منونکي مصدرونه چه د فعلونو د جوړښت لاره يې په پورته ډول ده دا دي : اغږل - اچول - استول - ببنل - بخښل - بلل - پلټل - پالل - پلورل - پوښتل - تېرل - تلل - توکل - توږل - تاکل - چېښل - زغمل - څټل - څنډل - څېرل - څپېړل - راوړل - داغل - رټل - ريبل - روزل - زېښل - زانګل ژغورل - ساتل - سپارل - ستايل - سکنل - شاربل - شېړل - شمېرل - ښندل - غندل - کرل - ګالل - ګنډل - لړل - لوښل - لېږل - ليکل - مينځل - وهل . (ټول ۴۷ مصدره اودرست متعدي دي)

## (۲) تغیرمنونکی مصدرونه

په لام والا مصدرونو کښی ځینی تغیرمنونکي مصدرونه هم شته چه فعلی ماده ئې په حالیه فعالو کښی تغییر خوري . دا مصدرونه ځینی قانوني شکل لری ، یعنی په یوه قسم کښی له دوو څخه زیات مثالونه لری لکه : وتل . او ځینی يې بې قانونه دی چه له یوه او دوو څخه زیات مثالونه لری لکه : کتل او نور .

داول قسم مثال : وتل

| | استمراری حال | مطلق حال | امکانی حال | مستقبل | استمراری امر | مطلق امر | استمراری ماضی | مطلقه ماضی | قریبه ماضی | بعیده ماضی | استمراری امکانی ماضی | کتنه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مفرد متکلم | وځم | وو ځم | وتلای شم | وبه وځم | | | وتلم | وو تلم | وتلی یم | وتلی یم | وتلای شوم | |
| جمع متکلم | وځو | وو ځو | وتلای شو | وبه وځو | | | وتلو | وو تلو | وتلي یو | وتلي وو | وتلای شو و | |
| مفرد مخاطب | وځې | وو ځې | وتلای شې | وبه وځې | وځه | ووځه | وتلې | ووتلې | وتلی یې | وتلی وې | وتلای شوې | |
| جمع مخاطب | وځئ | ووځئ | وتلای شئ | وبه وځئ | وځئ | ووځئ | وتلئ | ووتلئ | وتلي یئ (دیاست) | وتلي وئ | وتلای شوئ | |
| مفرد مذکر غایب | وځي | ووځي | وتلای شي | وبه وځي | وځي دې | ودې وځي | ووت | ووت | وتلی دی | وتلی ؤ | وتلای شو | |
| جمع مذکر غایب | ″ | ″ | ″ | ″ | ″ | ″ | وتل | ووتل | وتلي دي | وتلي وو | وتلای شول | |
| مفرد مؤنث غایب | ″ | ″ | ″ | ″ | ″ | ″ | وتله | ووتله | وتلې ده | وتلې وه | وتلای شوه | |
| جمع مؤنث غایب | ″ | ″ | ″ | ″ | ″ | ″ | وتلې | ووتلې | وتلې دي | وتلې وې | وتلای شوې | |

یادونه : ۱- ددې قسم نور مصدرونه دادی : الوتل - پرېوتل - پورې وتل - کښېوتل - پرې وتل - راوتل - ورووتل - ننوتل .

۲ - ددې قسم مصدرونو په حالیه فعلونو کښی « ت » په « ځ » بدلیږي او د مصدري علامې پرځای متصل ضمیرونه گرځي .

۳- په قانوني تغیرمنونکو مصدرونو کښی [خندل ، ژړل ، ویل ، لمبل ، غپل ، ځغل] هم راځی ، ددې مصدرو په حالیه فعلو نو کښی د اول توري نه وروسته یو الف زیاتیږي او هغو لې صیغي قانون سره سمې جوړیږي لکه : [خاندم - ژاړم - وایم - لامبم - ناځم] خو دغه مصدرونه یو بل خصوصیت لری چه په ماضي فعالو کښی يې یوازې د جمع مذکر غایب صیغه استعمالیږي ، لکه : وخندل ، خندلی دی ،

## دوهم قسم مثال - کتل

| | استمراری حال | مطلق حال | امکانی حال | مستقبل | استمراری امر | مطلق امر | استمراری ماضی | مطلقه ماضی | قریبه ماضی | بعیده ماضی | استمراری امکانی ماضی | کتنه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مفرد متکلم | گورم | وگورم | کتلای شم | وبه گورم | | | کتلم | وکتلم | کتلی یم | کتلی وم | کتلای شوم | |
| جمع متکلم | گورو | وگورو | کتلای شو | وبه گورو | | | کتلو | وکتلو | کتلی یو | کتلی وو | کتلای شوو | |
| مفرد مخاطب | گورې | وگورې | کتلای شې | وبه گورې | گوره | وگوره | کتلې | وکتلې | کتلی یې | کتلی وې | کتلای شوې | |
| جمع مخاطب | گورئ | وگورئ | کتلای شئ | وبه گورئ | گورئ | وگورئ | کتلئ | وکتلئ | کتلي یئ | کتلی وئ | کتلای شوئ | |
| مفرد مذکر غائب | گوري | وگوري | کتلای شی | وبه گوري | گوري دې | ودې گوري | کاته، کوت | وکاته | کتلی دی | کتلی ؤ | کتلای شو | |
| جمع مذکر غایب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | کتل | وکتل | کتلي دي | کتلی وو | کتلای شول | |
| مفرد مؤنث غایب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | کتله | وکتله | کتلې ده | کتلې وه | کتلای شوه | |
| جمع مونث غایب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | کتلې | وکتلې | کتلې دي | کتلې وې | کتلای شوې | |

یادونه:- ۱- ددې قسم مثالونه دادي: لیدل - ختل - پېژندل - وژل - خوړل - موندل - پرانیستل - پرېښودل - اخیستل - لوستل - راوستل - ویشتل - کښېناستل - څملاستل - اوښتل - غوښتل. چه د حال فعلونه یې په دې ډول راځي: وینم، ختږم، پېژنم، وژنم، خورم، مومم، پرانیځم پرېږدم، اخلم، لولم، راولم، ولم، کښېنم، څملم، اوړم، غواړم.

۲- په دې قسم مصدرونو کښې د حال، مستقبل او امر صیغې یعنې ټول حالیه افعال له استمراری حال څخه د عامې قاعدې سره سم جوړېږي او له دغه پورته گردان سره هیڅ توپیر نه لري.

۳- په دې مصدرونو کښې ځینې دوه توکیز مصدرونه دي [چه مطلق حال، مطلق امر، او مطلقه ماضي یې] دلجې په فشار جوړېږي. - او په اوله څپېه یې د اواز زور اچول کېږي لکه: پرانیځم، پرېږدم، راولم، کښېنم، څملم.

# د تلل مصدر ګردان

د دې مصدر په [ مطلق حال ، امر او مطلقه ماضي کښې هم يو تغير راغلی دی او په دی ډ ول دی .

| | استمراری حال | مطلق حال | امکاني حال | مستقبل | استمراری امر | مطلق امر | استمراری ماضي | مطلقه ماضي | قريبه ماضي | بعيده ماضي | استمراری امکاني ماضي | کتنه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مفرد متکلم | ځم | لاړ شم | تللای شم | لاړ به شم | | | تللم | ولاړم - لاړم | تللی يم | تللی وم | تللای شوم | |
| جمع متکلم | ځو | لاړ شو | تللای شو | لاړ به شو | | | تللو | ولاړو | تللی يو | تللی وو | تللای شوو | |
| مفرد مخاطب | ځې | لاړ شې | تللای شې | لاړ به شې | ځه | لاړ شه | تللې | ولاړې | تللی يې | تللی وې | تللای شوې | |
| جمع مخاطب | ځئ | لاړ شئ | تللای شئ | لاړ به شئ | ځئ | لاړ شئ | تللئ | ولاړئ | تللی یاست | تللی وئ | تللای شوئ | |
| مفرد مذکر غايب | ځي | لاړ شي | تللای شي | لاړ به شي | ځي دې | لاړ دې شي | تلو = ته | ولاړ | تللی دی | تللی ؤ | تللای شو | |
| جمع مذکر غايب | 〃 | لاړ شي | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | تلل | ولاړل | تللي دي | تللي وو | تللای شول | |
| مفرد مؤنث غايبه | 〃 | لاړه شي | 〃 | لاړه به شي | 〃 | لاړه دې شي | تلله | ولاړه | تللې ده | تللې وه | تللای شوه | |
| جمع مؤنث غايبې | 〃 | لاړې شي | 〃 | لاړې به شي | 〃 | لاړې دې شي | تللې | ولاړې | تللې دي | تللې وې | تللای شوې | |

يادونه : ۱- د دې مصدر په مطلق حال او مطلق امر کښې يو بل قانون نه تغير راځئ او د [ لاړ ] کلمه په کښې د شول د مصدر له ګردان سره راوړل کيږي .

۲- په ځينو لهجو کښې د [ لاړ شم ] پر ځای [ ولاړ شم ] هم ويل کيږي .

# د راتلل مصدر ګردان

د دې مصدر په ماضیه فعلو نو کښې هم تغیر راغلی دی چه په لاندې کربښې کښې ښودل کیږي.

| | استمراري حال | مطلق حال | مستقبل | استمراري امر | مطلق امر | استمراري ماضي | مطلقه ماضي | قریبه ماضي | بعیده ماضي | استمراري امکاني ماضي | کتنه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مفرد متکلم | راځم | راشم | را به شم | | | راتلم | راغلم | راغلی یم | راغلی وم | راتلای شوم | |
| جمع متکلم | راځو | راشو | را به شو | | | راتلو | راغلو | راغلي یو | راغلي وو | راتلای شوو | |
| مفرد مخاطب | راځې | راشې | را به شې | راځه | راشه | راتلې | راغلې | راغلی یې | راغلی وې | راتلای شوې | |
| جمع مخاطب | راځئ | راشئ | را به شئ | راځئ | راشئ | راتلئ | راغلئ | راغلي یاست (یئ) | راغلي وئ | راتلای شوئ | |
| مفرد مذکر غایب | راځي | راشي | را به شي | راځي دې | رادې شي | راته | راغی | راغلی دی | راغلی وُ | راتلای شو | |
| جمع مذکر غایب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | راتلل | راغلل | راغلي دي | راغلي وو | راتلای شول | |
| مفرد مؤنث غایب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | راتله | راغله | راغلې ده | راغلې وه | راتلای شوه | |
| جمع مؤنث غایب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | راتلې | راغلې | راغلې دي | راغلې وې | راتلای شوې | |

یادونه: ۱ـ د دې مصدر په [مطلق حال، مطلق مستقبل، او مطلق امر] کښې هم یو تغیر راځي او «ت» یې په «ش» بدلیږي او په مطلقه ماضي او نورو کښې یې «ت» په «غ» اوړي.

۲ـ د [ورتلل ـ درتلل] مصدرونه هم په پورته ډول ګردانیږي لکه: [ورشم، ورشه، ورغلم، درشم، درغلم].

۳ـ د [وړل] مصدر هم یو بې قانونه تغیر منونکی مصدر دی، خو دغه تغیر په مطلق حال او مطلق امر کښې راځي لکه: یوسی = وېسي ـ یوسه = وېسه او مطلقه ماضي یې داسې ده: وېووړ = یووړ ـ خو په استمراري، حال او امر کښې یې کوم تغیر نه راځي، لکه: وړم ـ وړه.

## ۳- لام و الا مترادف مصدرونه

په پښتو کښې ځینې لام و الا مترادف مصدرونه شته چه ټولې صیغې یې له یوه ځخه نه جوړېږي، بلکه ځینې یې له یوه او ځینې یې له بل ځخه لاس ته راځي. چه دا تغیرونه په لاندې ډول ښودل کیږي.

۱- ایښودل = کېښودل - ددې مصدر استمراری حال «ږدم» او مطلق حال «کېښېږدم» راځي او مطلقه ماضي یې هم له دوهم مصدر ځخه کېښود راځي.

۲- «ویستل = باسل» ددې مصدرو ماضي افعال له اول مصدر ځخه او حالیه فعلونه له دوهم ځخه جوړېږي لکه: باسم، وباسم، وبه باسم، وباسه.

۳- «وېستل = کاږل» ددې مصدرو ماضي افعال له اول مصدر ځخه او حالیه فعلونه له دوهم ځخه جوړېږي لکه: کاږم، وکاږم، وبه کاږم، وکاږه.

۴- «لرل = درلودل» د لرل - له مصدر ځخه ټول افعال جوړېږي او له - درلودل - ځخه یوازې مطلقه ماضي جوړېږي لکه: درلود.

۵- «بېول = بوتلل» له بېول - ځخه مطلق افعال نه جوړېږي او همغه له - بوتلل - ځخه راځي لکه: بوځم بو به ځم، بوځه، بوت.

۶- «چول = چاودل» له - چول - ځخه حالیه افعال او له - چاودل - ځخه ماضي افعال جوړېږي لکه: چوی - وچاود.

۷- «سپړل = سپړدل» له - سپړل - ځخه ټولې صیغې او له - سپړدل» ځخه یوازې ماضي افعال جوړېږي لکه: وسپړد، سپړدلی دی.

۸ـ « بنوول = بنودل » له بنوول څخه متولې صېغې او له بنودل څخه يوازې ماضۍ افعال جوړېږي لکه: وبنوو، بنودلی دی.

۹ـ «رول = رودل» له ـ رول څخه متولې صېغې او له ـ رودل ـ څخه يوازې ماضۍ افعال جوړېږي لکه: وروود ـ رودلی دی.

۱۰ـ «کېنل = کښېنستل » له ـ کېنل ـ څخه دحال فعلونه او له ـ کښېنستل ـ څخه ماضي فعلونه جوړېږي لکه: کېنم ـ وکښېنست.

۱۱ـ « کول = کړل » دحال فعلونه له دواړو ونه راځي او استمراري ماضي له کول ـ څخه او قریبه او بعیده له ـ کړل څخه جوړېږي لکه: کوی = کړی ـ کاوه ـ کړی دی، کړی ؤ.

۱۲ـ «کېدل = شول » له کېدل څخه استمراري صېغې راځي لکه: کېږي، کېده. او له ـ شول ـ څخه بې له استمراري ماضۍ څخه نور متول افعال راځي لکه: شي، وشي، وشو، شوی دی، شوی ؤ.

۱۳ـ «بایلل= بایلودل » له ـ بایلل ـ څخه متول افعال راځي او له ـ بایلودل ـ څخه يوازې ماضۍ افعال جوړېږي لکه: بایلود، بایلودلی دی.

۱۴ـ «نیول = نیسل » دحال فعلونه له ـ نیسل ـ څخه او ماضي فعلونه له ـ نیول ـ څخه جوړېږي لکه: نیسم ـ ونیوه.

---

یادونه: ددې مصدرونو نور فعلونه د لام والا مصدر د عامې قاعدې سره سم جوړېږي.

## ۴ – ول - والامصدرونه

د ل - والامصدرونه په دوه ډوله دي: يو هغه دي چه اول جزيې صفت او د ذات نوم نه وي لکه: [گرزول - رسول] او بل هغه دي چه اوجزيې يا صفت او يا د ذات نوم وي لکه: [پاکول. گامول] دغه دواړه د افعالو په گردان کښي سره توپير لري، خو د افعالو جوړښت يې د يو قانون لمخه کيږي او په دغه وجه قانوني مصدرونه گڼل کيږي.

### د اول قسم مثال: پاخول، گرزول

| | استمراري حال | مطلق حال | امکاني حال | مستقبل | استمراري امر | مطلق امر | استمراري ماضي | مطلقه ماضي | قريبه ماضي | بعيده ماضي | استمراري امکاني ماضي | کتنه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مفرد متکلم | گرزوم | وگرزوم | گرزولای شم | وبه گرزوم | | | گرزولم | وگرزولم | گرزولی يم | گرزولی وم | گرزولای شوم | |
| جمع متکلم | گرزوو | وگرزوو | گرزولای شو | وبه گرزوو | | | گرزولو | وگرزولو | گرزولي يو | گرزولي وو | گرزولای شو | |
| مفرد مخاطب | گرزوې | وگرزوې | گرزولای شې | وبه گرزوې | گرزوه | وگرزوه | گرزولې | وگرزولې | گرزولی يې | گرزولې وې | گرزولای شوې | |
| جمع مخاطب | گرزوئ | وگرزوئ | گرزولای شئ | وبه گرزوئ | گرزوئ | وگرزوئ | گرزولئ | وگرزولئ | گرزولي يئ | گرزولي وئ | گرزولای شوئ | |
| مفرد مذکر غايب | گرزوي | وگرزوي | گرزولای شي | وبه گرزوي | گرزوي دې | ودې گرزوي | گرزاوه | وگرزاوه | گرزولی دی | گرزولی ؤ | گرزولای شو | |
| جمع مذکر غايب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | گرزول | وگرزول | گرزولي دي | گرزولي وو | گرزولای شول | |
| مفرد مونث غايب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | گرزوله | وگرزوله | گرزولې ده | گرزولې وه | گرزولای شوه | |
| جمع مونث غايب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | گرزولې | وگرزولې | گرزولې دي | گرزولې وې | گرزولای شوې | |

يادونه: ۱- دغه راز مشهور مصدرونه دادي: اوړول، الوزول، بهول، پاڅول، تښتول، تمکول، جنگول، چڼول، چلول، ځړول، زغلول، ځلول، څنډول، څورول، څڅول، څملول.
خېژول، خوځول، ډارول، ډبول، رپول، شلول، غزول، غورځول، غوړول، غولول، لېتول، لړزول، لگول، لمبول، لمسول، لوبول، رغړول، غړول، نړول.
نښلول، درول، وېرول.

۲- دد غه راز مصدرونو د افعالو گردان د لام والا مصدرونو په شان کيږي او په مطلقو افعالو کښي بل کومې فعل ته ضرورت نه لري.

# دوهم قسم [ول] والا مصدر مثال: ويښول

| | استمراري حال | مطلق حال | امکاني حال | مستقبل | استمراري امر | مطلق امر | استمراري ماضي | مطلقه ماضي | قريبه ماضي | بعيده ماضي | استمراري امکاني ماضي | کتنه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مفرد متکلم | ويښوم | ويښ کړم | ويښولای شم | ويښ به کړم | | | ويښولم | ويښ کړم | ويښ کړی يم | ويښ کړی وم | ويښولای شوم | |
| جمع متکلم | ويښوو | ويښ کړو | ويښولای شو | ويښ به کړو | | | ويښولو | ويښ کړو | ويښ کړی يو | ويښ کړي وو | ويښولای شوو | |
| مفرد مخاطب | ويښوې | ويښ کړې | ويښولای شې | ويښ به کړې | ويښوه | ويښ کړه | ويښولې | ويښ کړې | ويښ کړی يې | ويښ کړی وې | ويښولای شوې | |
| جمع مخاطب | ويښوئ | ويښ کړئ | ويښولای شئ | ويښ به کړئ | ويښوئ | ويښ کړئ | ويښولئ | ويښ کړئ | ويښ کړی يې | ويښ کړي وئ | ويښولای شوئ | |
| مفرد مذکر غايب | ويښوي | ويښ کړي | ويښولای شي | ويښ به کړي | ويښوي دې | ويښ دې کړي | ويښاوه | ويښ کړ | ويښ کړی دی | ويښ کړی و | ويښولای شو | |
| جمع مذکر غايب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | ويښول | ويښ کړل | ويښ کړي دي | ويښ کړي وو | ويښولای شول | |
| مفرد مونث غايب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | ويښوله | ويښه کړله | ويښه کړې ده | ويښه کړې وه | ويښولای شوه | |
| جمع مونث غايب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | ويښولې | ويښې کړلې | ويښې کړې دي | ويښې کړې وې | ويښولای شوې | |

يادونه: ۱ـ دغه راز نور مشهور مصدرونه دادي: ارزانول، اسانول، اوچتول، اوارول. اوږدول، بارول، بلول، بندول، بوږول، ببلول، بدلول، پاکول، ماتول، مړول، نيمول، وازول، وچول، ودانول، ورانول، يادول، پخول، خبرول، لږول، ډېرول، پټول، پراخول، پورول، پوهول، تشول، ډکول. ژرګندول، ځيرول، خپرول، خپلول، ټولول، جوړول، جلکول، چاپول، ځايول، تودول، تويول، تيارول، تاوول، تنګول، تاوانول، خرابول، خرڅول. خښول، خوږول، خوشالول، دمول، روانول، درنول، سپکول، سمول، رنګول، روښانول، زياتول، ړندول، ژوبلول، سپينول، سړول، غوڅول. غوړول، کږول، کوزول، ودول.

۲ـ دغه ډول مصدرونو استمراري حال، او امر، او ماضي د اول قسم [ول] والا مصدر په قانون جوړېږي او په نورو افعالو کښې د کړل مصدر ګردانېږي.

# ۵ - یدل والا مصدرونه

یدل والا مصدرونه د « ول » والا په شان دوه رازه دي ، یوهغه دي چه اول جزءيې نه صفت او نه دذات نوم وي . او بل هغه دي چه اول جزءيې یا صفت او یا دذات نوم وي . دغه دواړه مصدرونه دافعالو داشتقاق له مخې سره توپير لري ، خو قانوني مصدرونه کټ مټ کيږي او افعال يې ديو قانون له مخې جوړيږي .

## داول قسم مثال : رسېدل

| | استمراري حال | مطلق حال | امکاني حال | مستقبل | استمراري امر | مطلق امر | استمراري ماضي | مطلقه ماضي | قريبه ماضي | بعيده ماضي | استمراري امکاني ماضي | کتنه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مفرد متکلم | رسېږم | ورسېږم | رسېدلای شم | وبه رسېږم | | | رسېدلم | ورسېدلم | رسېدلی یم | رسېدلی وم | رسېدلای شوم | |
| جمع متکلم | رسېږو | ورسېږو | رسېدلای شو | وبه رسېږو | | | رسېدلو | ورسېدلو | رسېدلي یو | رسېدلي وو | رسېدلای شوو | |
| مفرد مخاطب | رسېږې | ورسېږې | رسېدلای شې | وبه رسېږې | رسېږه | ورسېږه | رسېدلې | ورسېدلې | رسېدلی یې | رسېدلی وې | رسېدلای شوې | |
| جمع مخاطب | رسېږئ | ورسېږئ | رسېدلای شئ | وبه رسېږئ | رسېږئ | ورسېږئ | رسېدلئ | ورسېدلئ | رسېدلي یئ | رسېدلي وئ | رسېدلای شوئ | |
| مفرد مذکر غایب | رسېږي | ورسېږي | رسېدلای شي | وبه رسېږي | رسېږي دې | ودې رسېږي | رسېده | ورسېد | رسېدلی دی | رسېدلی ؤ | رسېدلای شو | |
| جمع مذکر غایب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | رسېدل | ورسېدل | رسېدلي دي | رسېدلي وو | رسېدلای شول | |
| مفرد مونث غایب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | رسېدله | ورسېدله | رسېدلې ده | رسېدلې وه | رسېدلای شوه | |
| جمع مونث غایب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | رسېدلې | ورسېدلې | رسېدلې دي | رسېدلې وې | رسېدلای شوې | |

یادونه : ۱- د دغه قسم مصدرونو دافعالو گردان د [ لام والا مصدر ] په قانون برابريږي ، يوازې په حال کښې يې « د » په « ږ » بدليږي .

۲ - پښتو لو [ لام والا مصدرونو ] کښې چه د « ول » په ځای « يدل » راشي نو [ يدل ] والا مصدر ترې جوړيږي ، يوازې [ الوزول ، خېژول ] ورنه وتلي دي .

# دوهم قسم مثال ـ ویښېدل

| | استمراري حال | مطلق حال | امکاني حال | مستقبل | استمراري امر | مطلق امر | استمراري ماضي | مطلقه ماضي | قريبه ماضي | بعيده ماضي | استمراري امکاني ماضي | کتنه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مفرد متکلم | ویښېږم | ویښ شوم | ویښېدلای شم | ویښ به شم | | | ویښېدلم | ویښ شوم | ویښ شوی یم | ویښ شوی وم | ویښېدلای شوم | |
| جمع متکلم | ویښېږو | ویښ شو | ویښېدلای شو | ویښ به شو | | | ویښېدلو | ویښ شوو | ویښ شوي یو | ویښ شوي وو | ویښېدلای شوو | |
| مفرد مخاطب | ویښېږې | ویښ شې | ویښېدلای شې | ویښ به شې | ویښېږه | ویښ شه | ویښېدلې | ویښ شوې | ویښ شوی یې | ویښ شوی وې | ویښېدلای شوې | |
| جمع مخاطب | ویښېږئ | ویښ شئ | ویښېدلای شئ | ویښ به شئ | ویښېږئ | ویښ شئ | ویښېدلئ | ویښ شوئ | ویښ شوي یئ | ویښ شوي وئ | ویښېدلای شوئ | |
| مفرد مذکر غایب | ویښېږي | ویښ شي | ویښېدلای شي | ویښ به شي | ویښېږي دې | ویښ دې شي | ویښېده | ویښ شو | ویښ شوی دی | ویښ شوی ؤ | ویښېدلای شو | |
| جمع مذکر غایب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | ویښېدل | ویښ شول | ویښ شوي دي | ویښ شوي وو | ویښېدلای شول | |
| مفرد مؤنث غایب | 〃 | ویښه شي | 〃 | ویښه به شي | 〃 | ویښه دې شي | ویښېدله | ویښه شوه | ویښه شوې ده | ویښه شوې وه | ویښېدلای شوه | |
| جمع مؤنث غایب | 〃 | ویښې شي | 〃 | ویښې به شي | 〃 | ویښې دې شي | ویښېدلې | ویښې شوې | ویښې شوې دي | ویښې شوې وې | ویښېدلای شوې | |

یادونه: ۱ـ دغه ډول مصدرونو [استمراري افعال] د [لام والا مصدرو] په قانون جوړېږي. یوازې مصدري «د» په «ښ» بدلېږي. او په نورو افعالو کښې یې د [شول] مصدر ګردانېږي.

# ۶– اکول والا مصدرونه

[کول والا مصدرونه] د معنی له مخې دوه ډوله دي: یو هغه دي چې اول توکی یې د فعل جزء ګرځېدلی وي؛ او بل مفعول غواړي لکه: غنم غوبل کول.

اوبل هغه دی چې اول توکی یې د مصدر جزء نه وي بلکه په خپله مفعول وي لکه: غوبل کول د غه مصدرونه د اشتقاق له مخې قانوني مصدرونه دي، او استمراري صیغې یې د لام والا مصدرونو په شان؛ او نورې صیغې یې د [کېدل] په ګردان سره جوړېږي.

## مثال: پخلا کول

| | استمراري حال | مطلق حال | امکاني حال | مستقبل | استمراري امر | مطلق امر | استمراري ماضي | مطلقه ماضي | قریبه ماضي | بعیده ماضي | استمراري امکاني ماضي | کننده |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مفرد متکلم | پخلا کوم | پخلا کړم | پخلا کولای شم | پخلا به کړم | | | پخلا کولم | پخلا کړلم | پخلا کړی یم | پخلا کړی وم | پخلا کولای شوم | |
| جمع متکلم | پخلا کوو | پخلا کړو | پخلا کولای شو | پخلا به کړو | | | پخلا کولو | پخلا کړلو | پخلا کړي یو | پخلا کړي وو | پخلا کولای شوو | |
| مفرد مخاطب | پخلا کوې | پخلا کړې | پخلا کولای شې | پخلا به کړې | پخلا کوه | پخلا کړه | پخلا کولې | پخلا کړلې | پخلا کړي یې | پخلا کړی وې | پخلا کولای شوې | |
| جمع مخاطب | پخلا کوئ | پخلا کړئ | پخلا کولای شئ | پخلا به کړئ | پخلا کوئ | پخلا کړئ | پخلا کولئ | پخلا کړلئ | پخلا کړي یئ | پخلا کړي وئ | پخلا کولای شوئ | |
| مفرد مذکر غائب | پخلا کوي | پخلا کړي | پخلا کولای شي | پخلا به کړي | پخلا کوې دې | پخلا دې کړي | پخلا کاوه | پخلا کړ | پخلا کړی دی | پخلا کړی و | پخلا کولای شو | |
| جمع مذکر غایب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | پخلا کول | پخلا کړل | پخلا کړي دي | پخلا کړي وو | پخلا کولای شول | |
| مفرد مونث غایب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | پخلا کوله | پخلا کړه | پخلا کړې ده | پخلا کړې وه | پخلا کولای شوه | |
| جمع مؤنث غایب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | پخلا کولې | پخلا کړې | پخلا کړې دي | پخلا کړې وې | پخلا کولای شوې | |

یادونه: د اول قسم [کول] والا څېني مصدرونه دا دي.

پاتې کول، پرې کول، پوری کول، پو کول، خپه کول، ورکول، راکول.

# ۷- کېدل والا مصدرونه

کېدل والا مصدرونه هم د [کول] والا په شان دمعنی له مخې په دوه ډوله دي لکه: [غنم غوبل کېدل] او [غوبل کېدل] دا مصدرونه هم د اشتقاق له مخې قانوني مصدرونه دي، ټولې صیغې یې د دوهم قسم [یدل] والا مصدرونو په شان جوړېږي. یعنې په استمراري افعالو کښې «د» په «ږ» بدلېږي او نور افعال د [شول] دګردان په واسطه جوړېږي.

## لکه: پخلاکېدل

| | استمراری حال | مطلق حال | امکانی حال | مستقبل | استمراری امر | مطلق امر | استمراری ماضی | مطلقه ماضی | قریبه ماضی | بعیده ماضی | استمراری امکانی ماضی | کتنه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مفرد متکلم | پخلاکېږم | پخلاشم | پخلاکېدلای شم | پخلا به شم | | | پخلاکېدم | پخلاشوم | پخلاشوی یم | پخلاشوی وم | پخلاکېدلای شوم | |
| جمع متکلم | پخلاکېږو | پخلاشو | پخلاکېدلای شو | پخلا به شو | | | پخلاکېدو | پخلاشو | پخلاشوي یو | پخلاشوي وو | پخلاکېدلای شوو | |
| مفرد مخاطب | پخلاکېږې | پخلاشې | پخلاکېدلای شې | پخلا به شې | پخلاکېږه | پخلاشه | پخلاکېدې | پخلاشوې | پخلاشوی یې | پخلاشوی وې | پخلاکېدلای شوې | |
| جمع مخاطب | پخلاکېږئ | پخلاشئ | پخلاکېدلای شئ | پخلا به شئ | پخلاکېږئ | پخلاشئ | پخلاکېدئ | پخلاشوئ | پخلاشوي یئ | پخلاشوي وئ | پخلاکېدلای شوئ | |
| مفرد مذکر غایب | پخلاکېږي | پخلاشي | پخلاکېدلای شي | پخلا به شي | پخلاکېږدې | پخلادې شي | پخلاکېده | پخلاشو | پخلاشوی دی | پخلاشوی ؤ | پخلاکېدلای شو | |
| جمع مذکر غایب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | پخلاکېدل | پخلاشول | پخلاشوي دي | پخلاشوي وو | پخلاکېدلای شول | |
| مفرد مؤنث غایب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | پخلاکېده | پخلاشوه | پخلاشوې ده | پخلاشوې وه | پخلاکېدلای شوه | |
| جمع مؤنث غایب | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | 〃 | پخلاکېدې | پخلاشوې | پخلاشوې دي | پخلاشوې وې | پخلاکېدلای شوې | |

**یادونه:** په ټولو [کول] والا مصدرونو کښې چه د «کول» په ځای [کېدل] راوړل شي نو [کېدل] والا مصدرونه ترې جوړېږي. لکه: پاتې کېدل، پرې کېدل او نور.

۱ـ دتلو لو [لام والا مصدرونو] استمراري حال داسې جوړيږي چه دفعل ما دې په پای کښې متصل ضميرونه گر دانيږي متصل ضميرونه دادي [م، و، ې، ئ، ي] لکه: [ساتم ـ ساتو ـ ساتې ـ ساتئ ـ ساتي] يا [گورم ـ گورو ـ گورې ـ گورئ ـ گوري].

۲ـ مطلق حال ـ داستمراری حال په سرکښی د [و] په زياتولو جوړيږی لکه: [وساتم ـ وساتو ـ وساتې ـ وساتئ ـ وساتي]

۳ـ امکانی استمراری حال ـ دفعلی صفت په آخر کښی د [شم ـ شو] په گردانولو جوړيږي لکه: [ساتلای شم ساتلای شو ـ ساتلای شې ـ ساتلای شئ ساتلای شي].

۴ـ امکاني مطلق حال ـ دامکاني استمراری حال په سرکښی د [و] په زياتولو جوړيږی لکه: [وساتلای شم ـ وساتلای شو ـ ...] تر آخره.

۵ـ استمراری مخاطب امر ـ دمصدری [ل] پرځای د [ه ـ ئ] په راوړلو جوړيږی لکه: [ساته ـ ساتئ]

۶ـ دمطلق امر دپاره داستمراری امر په سرکښی [و] زياتيږی لکه: [وساته ـ وساتئ] او دغايب دپاره له [و] نه وروسته [دې] راوړل کيږی لکه: [ودې ساتي]

۷ــ مستقبل ــ د مطلق حال په مخ کښی د [ به ] په راوړلو جوړیږي لکه : [ وبه ساتم ــ وبه ساتو ] ترآخره

۸ــ استمراری مستقبل ــ د استمراری حال په آخرکښی د [ به ] په راوړلو جوړیږي لکه [ ساتم به ــ ساتو به ] ترآخره .

## ماضیه فعلونه :

۹ــ استمراري ماضی په دې ډول راځي چه د مصدر په آخرکښی متصل ضمیرونه گردانیږی او اته صیغی لری لکه : [ساتلم ــ ساتلو ــ ساتلې ــ ساتلئ ــ ساته ــ ساتل ــ ساتله ــ ساتلې .

۱۰ــ د مطلق ماضی دپاره د استمراري ماضي په سرکښی [ و ] زیاتیږي لکه : وساتلم ــ وساتلو ــ وساتلې ــ وساتلئ ...] ترآخره

۱۱ــ امکانی استمراری ماضی ــ د فعلی صفت په آخرکښی [ شوم ــ شوو ــ ترآخره ] گردانیږي لکه : [ ساتلای شوم ــ ساتلای شوو ... ترآخره ] .

۱۲ــ امکانی مطلقه ماضی ــ د امکاني استمراري په سرکښی د [ و ] په زیاتولو جوړیږي لکه : [ وساتلای شوم ــ وساتلای شوو ترآخره .

۱۳ــ نژدې ماضی د فعلي صفت په پای کښی د [ یم ــ یو ــ یې ــ یئ ــ دی ــ ده ــ دي ] په گردانولو جوړیږی ــ لکه : [ ساتلی یم ــ ساتلی یو ــ ساتلي یې ــ ساتلي یئ ــ ساتلی دی ــ ساتلې ده ــ ساتلي دي ــ ساتلئ ی ــ

۱۴ــ لیری ماضی ــ دفعلی صفت په پای کښی د [وم ــ وو ــ وه ــ وې] په گردانولو جوړیږی لکه: [ساتلی وم ــ ساتلی وو ــ ساتلی وې ــ ساتلی وئ ــ ساتلی وُ ــ ساتلي وو ــ ساتلې وه ــ ساتلې وې.

۱۵ــ احتمالي ماضي ــ دفعلی صفت په پای کښی [به وی] راځی لکه: [راغلی به وی ــ تللی به وی]

۱۶ــ تأکیدی ماضی ــ له لیری ماضی څخه دفعلي صفت په پای کښی د [به] په زیاتولو جوړیږي لکه: [راغلی به وُ ــ تللی به وُ.

۱۷ــ تمنایي ماضی ــ دفعلی صفت په پای کښی [وای راوړل کیږی لکه: که تللی وای ــ که راغلی وای.

۱۸ــ که چیری دمصدر د [ل] پرځای د [ونکی] نښه راشی فاعلی صفت تری جوړیږي لکه: [ساتونکی ــ کتونکی] او په حال او راتلونکی پوری اړه لری.

۱۹ــ که چیرې دمصدر په آخر کښی [نه‌ی] راوړل شي، نو په متعدی افعالو کښی ترې مفعولي صفت او په لازمي افعالو کښی ورڅخه فاعلی صفت جوړیږي لکه: [ساتلی ــ بللی ــ راغلی ــ تللی] داصیغی په تیره زمانه اړه لري.

# مجهول فعلونه

ټول مجهول فعلونه له مجهول متعدي مصدر څخه جوړيږي، دغه راز مصدرونه له اصلي متعدي مصدرونو سره مصدر [کېدل] له ترکيب څخه لاس ته راځي لکه: [وهل کېدل - غوڅول کېدل] دا فعلونه د جوړولو لپاره يې پهلاندي ډول ښودل کيږي.

۱- استمراري حال له اصلي مصدر نه وروسته د [کېږي] په ګردان جوړيږي لکه: [وهل کېږم - وهل کېږو] تر آخره.

۲- په استمراري مستقبل کښې ورسره [به] زياتيږي لکه: [وهل کېږم به - وهل کېږو به] تر آخره.

۳- په امکاني حال کښې د ټولو مرکبو مصدرونو په آخر کښې «شم - شو» ګردانيږي لکه: [وهل کېدلای شم - وهل کېدلای شو.] تر آخره

۴- په مطلق حال کښې له اصل مصدر نه د مخه «و» او وروسته [شم - شو] ګردانيږي لکه: [ووهل شم - ووهل شو] تر آخره

۵- په مطلق مستقبل کښې [د مطلق حال] له [و] نه وروسته [به] زياتيږي لکه: [وبه وهل شم - وبه وهل شو] تر آخره

۶- په غائب امر کښې له [و] نه وروسته «دې» زياتيږي لکه: [ودې وهل شي.] تر آخره

۷- په استمراري ماضي کښې له اصلي مصدر نه وروسته [کېدل] ګردانيږي لکه: [وهل کېدم - وهل کېدو] تر آخره

۸- په مطلقه ماضي کښې له اصل مصدر نه د محذ « و » او وروسته تري "شوم - شوو" ګردانيږي لکه [و هل شوم - و وهل شوو ...] تر آخره .

۹- په نژدې ماضي کښې له اصل مصدر نه وروسته [شوی يم ، شوي يو] ګردانيږي . لکه : [وهل شوی يم - وهل شوي يو ...] تر آخره

۱۰- په ليرې ماضي کښې له اصل مصدر نه وروسته [شوی وم - شوي وو] ګردانيږي لکه : [وهل شوی وم - وهل شوي وو ...] تر آخره

---

يادونه : د دوهم قسم [ول والا] او [کول والا] مصدرونو استمراري فعلونه په پوره قانون برابر جوړيږي لکه : [غوڅول کيږي - پرې کول کيږي] مګر په مطلق حال کښې د مخفف فعلي صفت نه وروسته [شم - شو] او په مطلقه ماضي کښې [شوم ، شوو] او په نژدې ماضي کښې [شوی يم] او په ليرې ماضي کښې [شوی وُ] ګردانيږي لکه : [غوڅ کړ شم - غوڅ کړ شوم - غوڅ کړ شوی يم] او په مطلق مستقبل کښې له اول جزء نه وروسته [به] او په غائب امر کښې [دې] راوړل کيږي لکه : [غوڅ به کړ شي - غوڅ دې کړ ی شي] .

# منفي فعلونه

په پښتو کښې منفي فعلونه په وروسته ډول جوړېږي :

۱ـ د حاضر امر د نفي د پاره د امر په سر کښې [مه] راځي لکه: [مه منه، مه ګوره، مه غوڅوه، مه پرېکوه]

۲ـ په مرکبو افعالو کښې [مه] د اول جزء او کومکي فعل تر منځ راځي لکه: [خوار مه شې - ورک مه شې].

۳ـ د غایب امر د نفي د پاره د [و] په ځای [نه] راځي لکه: [نه دې ګوري - نه دې خوري].

۴ـ په ټولو استمراري افعالو کښې د نفي توری [نه] له فعل نه د مخه راځي لکه: [نه خوري - نه مني - نه تللم - نه پاڅېدلم].

۵ـ په ټولو مطلقه افعالو کښې د [نه] توری له [و] نه یا د اول جزء نه وروسته د فعل په منځ کښې راځي. لکه: [و نه منم] و نه خورم - و به نه مني]

کښې نه نی - پورې نه وځي - و نه مانه - پا نه څېد].

۶ـ په نږدې او لیرې ماضي او نورو ماضي ګانو کښې د [نه] توری له وروستي کومکي فعل نه د مخه راځي. لکه: [لیدلی نه یم - کتلی نه وم -

پرې کړ شوی نه دی - لیدل شوی نه دی - وهل شوی نه دی] او نور.

## لام والا مصدرونو اول قسم

| مصدر | معنی |
|---|---|
| اغزل | خمیر کردن |
| اچول | انداختن |
| استول | فرستادن |
| بښل | بخشیدن |
| بلل | دعوت نمودن |
| پلټل | تفتیش نمودن |
| پالل | پروریدن |
| پلورل | فروختن |
| پوښتل | پرسیدن |
| تړل | بستن |
| تلل | وزن کردن |
| توکل | تف کردن |

| مصدر | معنی |
|---|---|
| تاکل | تعین کردن |
| څښل | نوشیدن |
| څټل | لیسیدن |
| څنډل | تکاندن |
| څیرل | چیر کردن |
| څېړل | تتبع کردن |
| داغل | داغ کردن |
| رټل | توبیخ دادن |
| روزل | پرورش نمودن |
| زبېښل | چوشیدن |
| زانګل | گاز خوردن |
| ژغورل | نجات دادن |

| مصدر | معنی |
|---|---|
| سپارل | سپردن |
| ستایل | ستودن |
| سکڼل | قیچی کردن و برش کردن |
| شاربل | جک زدن |
| شړل | راندن |
| شمېرل | شمردن |
| ښندل | بخشیدن |
| غندل | بد گفتن |
| کرل | کاشتن |
| ګالل | متحمل شدن |
| ګنډل | دوختن |
| لړل | |

| مصدر | معنی |
|---|---|
| لوشل | دوشیدن |
| لیږل | فرستادن |
| لیکل | نوشتن |

| مصدر | معنی |
|---|---|
| مینځل | شستن |
| منل | قبول کردن |
| وهل | زدن |

## لام والا مصدرونه دوهم قسم

| مصدر | معنی |
|---|---|
| وتل | برامدن |
| الوتل | پریدن |
| پریوتل | افتیدن |
| پورې وتل | از دریا عبور نمودن |
| کښېوتل | گرفتار شدن |
| تېروتل | بازی خوردن |
| راوتل | برامدن |

| مصدر | معنی |
|---|---|
| وروتل | برامدن |
| ننوتل | داخل شدن |
| خندل | خندیدن |
| ژړل | گریستن |
| ویل | گفتن |
| لمبل | غسل کردن |
| غپل | عفعف کردن |

| مصدر | معنی |
|---|---|
| نڅل | رقصیدن |
| کتل، لیدل | دیدن |
| ختل | بالا شدن |
| پېژندل | شناختن |
| وژل | کشتن |
| خوړل | خوردن |
| موندل | یافتن |
| پرانستل | کشودن |
| پرېښودل | گذاشتن |
| لوستل | خواندن |
| راوستل | آوردن |

| مصدر | معنی |
|---|---|
| راوړل | آوردن |
| ویشتل | زدن |
| کښېناستل | نشستن |
| څملاستل | خوابیدن |
| اوښتل | گشتن |
| غوښتل | خواستن |
| راتلل | آمدن |
| تلل، ورتلل | رفتن |
| وړل | بردن |
| ایښودل | نهادن |
| ویستل | کشیدن |

| مصدر | معنی | مصدر | معنی | مصدر | معنی | مصدر | معنی | مصدر | معنی | مصدر | معنی | مصدر | معنی |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لرل | داشتن | ول والا مصدرونه اول قسم | | | | لټول | پالیدن | ول والا مصدرونه دوهم قسم | | | | لږول | کم کردن |
| بېول | بردن | | | | | لړزول | لرزاندن | | | | | ډېرول | زیاد کردن |
| چوول | شق کردن | اورول | شنواندن | ځورول | جور دادن | لگول | درد دادن | ارزانول | ارزان ساختن | وازول | باز نمودن | پټول | مخفی نمودن |
| سپړل | شگفتن | الوزول | پراندن | څڅول | چکاندن | لمبول | غسل دادن | اسانول | آسان ساختن | وچول | خشک کردن | پراخول | وسیع ساختن |
| ښودل | نشاندن | بهول | جاری ساختن | څملول | خواباندن | لمسول | تحریک نمودن | اوچتول | بالا کردن | ودانول | تعمیر کردن | پورول | قرض کردن |
| روول | مکیدن | پاڅول | خیزاندن | خوځول | شور دادن | لوبول | ﴿ببازی مشغول نمودن﴾ | اوارول | هموار نمودن | ورانول | تخریب کردن | پوهول | فهماندن |
| کیښل | کندن | تښتول | گریزاندن | ډارول | ترساندن | غړول | چشم کشودن | اوږدول | امتداد دادن | یادول | حفظ کردن | تشول | خالی کردن |
| کول | کردن | ټکول | کوفتن | ډبول | زدن | رغول | لول دادن | بارول | حمل کردن | پخول | پختن | ډکول | پر نمودن |
| کېدل | شدن | جنگول | جنگاندن | رپول | شور دادن | نړول | ویران کردن | بلول | افروختن | خبرول | خبر کردن | څرگندول | ظاهر کردن |
| بايلل | باختن | چغول ـ | | ښلول | سکلاندن | نښلول | چسپاندن | بندول | بند کردن | ټولول | فراهم نمودن | څېرول | چیر کردن |
| | | چلول | چلاندن | غزول | نواختن | درول | ایستاد کردن | بهول | جاری ساختن | جوړول | ساختن | خپرول | نشر نمودن |
| | | ځړول | آویزان کردن | غورځول | انداختن | ویرول | ترساندن | بدلول | تبدیل کردن | جگول | بالا کردن | خپلول | از خود ساختن |
| | | زغلول | دواندن | غوړول | هموار کردن | | | پاکول | پاک نمودن | چاپول | طبع نمودن | تویول | ریختاندن |
| | | ځلول | درخشاندن | غولول | بازی دادن | | | ماتول | شکستاندن | ځایول | جای نمودن | تیارول | تهیه نمودن |
| | | څنډول | تال دادن | خېژول | بالا کردن | | | مړول | سیر نمودن | تودول | گرم ساختن | تاوول | تابیدن |

| مصدر | معنی |
|---|---|
| تنگول | تنگ ساختن |
| تاوانول | تاوان ساختن |
| خرابول | خراب ساختن |
| خرڅول | فروختن |
| خښول | گور نمودن |
| خوږول | شیرین ساختن |
| خوشالول | خوش کردن |
| دمول | دم کردن |
| روانول | روان کردن |
| درنول | گرنگ ساختن |
| سپکول | سبک ساختن |
| رنگول | رنگ کردن |
| روښانول | روشن ساختن |
| زیاتول | زیاد ساختن |
| ړندول | کور نمودن |

| مصدر | معنی |
|---|---|
| ژوبلول | مجروح ساختن |
| سپینول | سفید ساختن |
| سړول | سرد ساختن |
| غوڅول | بریدن |
| غوړول | چرب ساختن |
| کږول | کج کردن |
| کوزول | پایان کردن |
| ودول | ازدواج کردن |

کول والا مصدرونه

| مصدر | معنی |
|---|---|
| پاتی کول | معطل ساختن |
| پوری کول | پیش ساختن |
| خپه کول | دق ساختن |
| ورکول / راکول | دادن |
| پری کول | بریدن |
| پوکول | پف کردن |
| پخلا کول | آشتی کردن |

